# پښتو او اوېستا

## وییبنود (قاموس)






لومړی برخه






لطیف جان بابی



۱۳۷۹ ۲۰۰۰

# مخڅوړ:


| | | |
|---|---|---|
| د لیکي نوم | : | پښتو او اوېستا ویی ښود |
| لیکوال | : | لطیف جان بابی |
| کمپوزر | : | احمد ویس وردګ |
| خپرندوی | : | پښتو یون |
| د ټاپ چارې | : | د افغانستان د کلتوري خدمتونو اداره |
| پر له پسې خپرونه | : | (۳) |
| شمېر | : | ۱۰۰۰ |
| د خپرېدو کال | : | ۱۳۷۹/۲۰۰۰ |
| ټاپځی | : | ملت پرېس ـ لاهور |

بسم الله الرحمن الرحیم

# پښتو یون

د پښتو یون، خپل یانه ته دوام ورکوي دا ددې یون د خپرونو د لړۍ دریېمه کړۍ ده، په دې اثر کښې هم سره له دې چې ډېر کوچنی دی خو یوه لویه او ارزښتمنه موضوع پکښې نغښتې ده چې هغه د پښتو او اوېستا لغوي نژدېوالی او ان چې یووالی دی.

اوستا د آریانا زړه ژبه ده او دا وروکی ویې ښود د درنو لوستونکو له پاره ددې دواړو لرغونو ژبو نژدېوالی او خپلوي په ښه ډول زباتوي.

موږ داسې خېړنې د پښتو په یون کښې گټورې گڼو نو ځکه پښتو یون د زړو متنونو تر څنگ دا ډول خېړنې او گروهړنې هم د ژبې د بنسټ په برخه کښې خپروي او د بنسټونو د پخولو له لارې پر مخ ځي

په درنښت
د پښتو یون منځې
نیویارک، امریکا

# دا کتاب

اوښتا د آریانا یوه زړه ژبه ده چې د آریایانو له ښاري او مدني ژوند سره جوخت یې ادبي بڼه غوره کړې. د ښې منني ښې کړنې او ښې وینې د استاځي، سپین تمان زردشت ګاثونه په همدې ژبه دي او د یسنا او یشتونو لاړښوونې هم د همدې ژبې زړه پانګه ده.

ژبپوهان د پښتو او اوښتا په خپلوۍ کښې شک نه کوي ځینې اوښتا زړه پښتو بولي، ځینې اوښتا ته د پښتو مور وایي. ځینې یې د پښتو د میندو له ډلې شخه ګڼي او ځینې بیا د پښتو خور او وین شریکه ورته وایي.

که د پښتو او اوښتا د خپلوۍ نسبت هر څه وي خو دا یوروڼ او څرګند واقعیت دی چې پښتو او اوښتا ژور ژبنې اړیکي سره لري او یو له بله یې د پیوستون مزي ګڼ او مرغلین دي

دا خبره د خولې ددعوو نه ده عملی کار غواړي او په دې برخه کښې د دواړو ژبو په پښویه او ګرامر. ریښو او بنسټونو ژور کار په کار دی

د ګران لطيف جان بابي دا کوچنوټی کتاب که هر څومره د پاڼوله مخې لنډ او وړوکی دی خو د پښتو او اوېستا د لرغونو ژبو د سره لنډون او پيوستون په برخه کښې د ښه يوه داسې ډبره ده چې ددې ډول څېړنو راتلونکې ماڼۍ به پرې ودانېږي او پرې ودرېږي.

دا نه يوازې دا چې د نورو له پاره د پيل ټکی دی بلکه ده په خپله هم د خپل کار بسم الله پرې کړې او څېړنه يې روانه ده چې ددې اثر نورټوکونه وليکي، د ويونو تر لنډون وروسته يې د ګډې پښو يې بنسټونه هم وڅېړي او په دې لاره کښې نوي ګامونه کښېږدي.

د همداسې اوږدو، ژورو او سترو څېړنو په هيله دا وړکی رساله ستاسې مخې ته وړاندې کېږي او هيله ده چې د پښتو او اوېستا په ريښو او رشتو تردې وروسته پلنې او ژورې څېړنې وشي او په ژبنيو رشتو سربېره يې ادبي او فکري ريښې او رشتې هم وڅېړلې شي.

زه ګران لطيف جان بابي ته ددې کار د پيلولو له امله مبارکي ورکوم او د کار د دوام برى يې دلوى خښتن له لوى دربار نه غواړم!

په مينه

حبيب الله رفيع

پېښور، پښتونخوا

۱۳۷۹/۴/۵


PROPERTY OF ACKU
8961

# پښتو او اوېستا

پښتیانا یاندي د پښتنو لوی هېواد د آسیا او اروپا د ژبو لومړنی ایروېجه (مرکز) ده چې ټولې ژبې خپلې رېښې پکښې موندلای سي.
د پښتنو د آري ژبې د زړښت، لرغونتوب، تورو او ریښو ببلګې د شاوخوا په لیرې او نژدې، مړو او ژوندیو ژبو کښې تر اوسه پورې په لړ او ډېر توپیر سره خوندي پاته دي چې د ژبپوهنې په رڼا کښې یې د ببلګو څرګونه څرګند دي، خو بیا هم د زیاتو څېړنو او پلټنو اړتیا لیدل کېږي ځکه چې پښتو تر اوسه پورې بکره او ستهی پاتې سوې ده او د زدیو راهیسې د تورو او جګړو ژبه وه

او لیکنی پاڼې ډېرې لرې وربانديې تورې سوي دي. که څه هم نړیوال ژبپوهان او کړکیښ پوهان تر هغې لرې پلټنې وروسته په دې ګروهه سوي دي چې پښتو و اوېستا ته بیخي ورنژدې ده او کنه نو یوې داسې ورکې ژبې ته ورته ده چې اوېستا ځنې رازبېږېدلې ده.

د پښتو ویونکي د پښتیانا آر اوسېدونکي دي چې د نړۍ پر مخ یې د لومړني وګړپال هڅوب او وګړیز وادون (تمدن) خښته د لرغوني پښتي (ننني بلخ) په زړه کښې ایښې ده چې ددې وګړو لومړنۍ ژبه هم همدلته سره راغونډه سوې ده.

پښتیانو د خپل آرټاټوبي څخه د ډېروالي یا سړو له کبله په لېږد پیل وکړ او د نړۍ پر بېلو بېلو سیمو سره استوګن سول، دوی خپله آره اوېجه چې نیکه ګان او پلرونه یې پکښې ایره سوي وو (ایرنا) وبلله چې ورو ورو د پښتیانو آره (ایرنا) په آریانا پسې نوموره سوله.

د پښتیانو مورنۍ او لومړنۍ ژبه پښتو هم پخپله لومړنۍ زانګو (پښتي) کښې زېږېدلې او همدلته پالل سوې او روزل سوې ده چې د همدې ځایه څخه د پښتیانو په لېږدونو سره د ایران او هند پر ژبو اغېزمنه سوې ده.

پښتو پخپلو آرو ورشو ګانو کښې د نالېږدو پښتيانو سره پاتې سوله مګر سنسکرېت او اوېستا د خپل آر ټاټوبي څخه څه نا څه لېرې ولاړلې او په نورو ژبو ورګډې سولې.

پښتو د آر هېواد آره ژبه وه چې د آرتوب له کبله يې آريل بلله د هندو اروپا ژبې د آريا په پښت پورې اړه لري ځرنګه چې د لومړنۍ آريايي ژبې لومړني ويونه خورا زيات په پښتو کښې سته نو پښتو د هندو اروپايي ژبو يوه غوره او لرغونې ژبه ګڼل کېږي او د سامي ژبو سره هېڅ کوم اړيکې نه لري.

پښت (پخد، بخد، پکهت) د پښتي (بلخ) لوی ټبر ؤ چې د ژبنيو بدلونونو او د بېلو بېلو ولسونو د بېلو تورو په ويښت سره د (پښت) څخه په ويدا کښې (پکهت) جوړ سو، په اوېستا کښې په (بخد) واوښت، يوناني هېرو دوت په (پکتويس) ولوست، دا ځکه چې د (ښ) توری په ډېرو ژبو کښې نسته.

لکه څنګه چې په ويدا کښې د پښت (پکهت) ټبر تر نورو لرغونی او زوړ دی نو پښتو هم تر اوېستا، زند، پهلوي، زړې پارسو او نوې پارسو پخوانۍ ده.

پښتيانو د خپلې آرۍ اوبچې څخه ځلور زره کاله وړاندې تر زيږ لومړی لېږد (کوچ) کړی دی چې آريانا ويجه نوميدله چې (آريا) او (ويجه) توري تر اوسه پورې په پښتو کښې پاته دي.

منځنې پښتيان د هيندوکش په ګڅيځو (شمالي) او سوهيلي (جنوبي) لمنو کښې هستوګن وو، د اباسين له څنډو څخه بيا د آمو او خراسان تر دښتو پورې د دوی د آر هېواد نورې نومورې سيمې بلخ، تخارستان، هرات، اراکوسيا، کابل، کندهار او سګستان وو.

په دوهم لېږد کښې د پښتيانو يوه ډله د هرات لخوا له خراسانه تېره سوله او د پارس خاورې يې ونيولې چې د خپلې ژبې، دود او بايدې اغېزې يې پر همدې نيول سوو سيمو خپرې کړلې او تر زييږ مخکښې يې د اوومې پېړۍ په پيل سره د (ماد) په نوم يوه واکمني جوړه سوله چې دا ځای د ننني ايران په نوم يادېږي.

ميدي ټبرونو ځانونه آرين بلل او هخامنشي دارياوس يا لوی داريا (٤٨٦- ٥٢١ مخکښې تر زييږ) هم پخپل ډبرليک کښې ځان د پښتيانو له پښته ويارلی دی، د دارياوس ډبرليک چې په زړه پښتو ليکل سوی دی د زړې پاړسو سره ډېر توپير لري.

د پښتیانو درېیم لېږد تر زیږ مخکښې په څورلسمه پېړۍ کښې د کابل او خیبر له لارې د اباسین او ګنګا تر منځ یو ځلاند وادون (تمدن) جوړ کړ او د هند په ځنګلونو او بېونو کښې سره ودان سول، د خپلو دودونو، ژبې او هڅوب اغېزې یې پر نیول سوو سیمو خپرې کړلې او د ویدا دیني لیکۍ (کتاب) یې پخپله ژبه وکیښ، په دغه وخت کښې چې هندي آریایانو ویدا لیکۍ د پښتي (بلخ) آریایان د (پکهت) په نوم سره نومور وه.

ریګویدا د (پکهت) او د دوی د هېواد، غرونو، رودونو او ځمکو په باره کښې رغېږي، پښت یا پکهت چې وروسته پارت بلل سوي دي تر زیږ وړاندې د درېیمې پېړۍ په شاوخوا کښې د خپل مشر ارساس سره د لوېدیځ پر لور ولاړل د هریرود ولوېدیځې خوا ته د خزر تر ځنډو پورې یې د پارتیا په نوم د یوه لوی وادون (تمدن) ستڼه کښېښودله چې د ارمنستان تر لوېدیځو خواوو پورې رسېدله، د پښتنو همدا وادون د (پکهت) یاندي (پکتویس) په نوم نومور ؤ چې همدغه ځای یې پښتیکا (پکتیکا) نوماوه.

ویدا د پښتنو د توریالیتوب، ننګیالیتوب، واکچارۍ (اداري نظام) او لښکري تاړ د سمبالتیا او همدا رنګه د دې ستر ټبر دښتمنیو او بداینوبونو

خخه رغبري او پښتها (پکتها) د پښتنو پاچا یادوي.

نوموړي تېر تر ویدا مخکې هم روښ کړکیښ (تاریخ)، وادون (تمدن) او لرغونی هڅوب درلود چې د ژبې اټکل یې هم د تېریخ لرغونتوب په ګچه ښاکل کېدای سي.

منځنیو پښتیانو خپل هېواد (آریاورشه) باله چې منځوېچه (مرکز) یې پښتي (ننني بلخ) ؤ، چې دا نوم لومړی پلا د منو سمهیتا په لیکي (کتاب) کښې راغلی دی. منو یا مانو د آریایانو پلار بلل کېږي، مانو یا منو یو لرغونی پښتو نوم دی چې پښتانه یې نن پر زامنو ږدي چې د همدې کتاب د لیکوال (لطیف جان بابي) د یوه زوی نوم مانو خان دی.

نالېرډېدلو پښتیانو په پښتي کښې پښتو خوندي کړله، هغه ډله چې وایران ته ولاړله ژبه یې پخوانی پاړسو، بیا پهلوي او بیا اوسنی فارسي سوله. هغو ډلو چې د هند پر لور ورمخه کړله د هغه ځای د ژبې په ګډون یې سنسکرېت رامنځ ته کړله.

د اوبستا کتاب هم په پښتي کښې تر زییخ وړاندې په زرمه نېټه لیکل سوی دی.

اوپستا د زرتښت د وختونو ژبه ده، د پښتیانو د یون او لېږدونو څخه رغېږي چې ژبه یې و لرغونې ویدا ته زیاته ورته او نژدې ده.

د هغه وخت د باختر پاچا د زرتښت دین ومانه، اوپستایې د غوایانو پر پوستکو ولیکله او وهري خوا ته یې ولېږله، ځکه نو اوپستا ته باختري ژبه هم وایي.

سکندر اوپستا وسوځوله چې پردوولسو زرو پوستکو او څرمنو لیکل سوې وه، لرغونې اوپستا د پښتیانو د زاړه کړکېښ، دود، بایدې، هڅوب، ټولنیز ژوند، هېواد پالنې او د پښتني د واکمنو کورنیو او د هغوی د واک، والې او کړنلارو په باره کښې لیکل سوې وه. اوپستا څو څو ځله ورکه سوې ده او په بیا بیا راټوله سوې ده، هر چا هر څه ترې کم کړي او زیات کړي دي، د زړې اوپستا هېڅ څرک نه دی لګېدلی او نه هم نننی اوپستا د باختري ژبې ښکارندویه ده، د اوپستا د (۳٤۷۰۰۰) ویونو څخه اوس یواځې (۸۳۰۰۰) ویونه پاتې دي.

د ساسانیانو پر پېک (٦۲۹ زېږ) د اوپستا ټول سکونه (جونګونه، لیکیان) یوویشت وو چې پر درو برخو وېشل سوي وو:

۱. **ګاڅونه**: د اوښتا ډېره ارزښتناکه برخه ده چې سندرې، سرودونه او اووه نسکونه لري چې د زرتښت په وزمينو نغوړو او پندونو رنګينه سوې ده او اووه نسکونه يې په لاندې ډول دي:

۱- ستوت يشت، ۲- سوتکر، ۳- ورست مانسر، ٤- بګ، ٥- وستګ، ٦- هادهوخت، ۷- سپند.

۲. **دات**: ديتونيزي (قانوني) خبرې لري چې پر اوو برخو وېشل سوې دي:

۱- نيکاتوم، ۲- ګنداسرنيګت، ۳- هوسپارم، ٤- سکاتوم، ٥- ونديداد، ٦-کتردات، ۷- بګان يشت.

۳. **هدهه ماتهرا**: دا برخه چې ښه نه ده پېژندل سوې، اووه څپرکي لري:

۱- دامدات، ۲- ناتر، ۳- پاګګ، ٤- رت دات ايتګ، ٥- بريس، ٦- کش کيشرو، ۷- ويشتاسب ساست.

# اوسنی اوېستا

*اوسنی اوېستا پر پينځو برخو ولاړه ده:*

۱. ېسنا: چې مانا يې نمځنه، ستاينه او جشن ده چې بدلې يې د دينې کړاندو پر وخت ويل کېږي.

۲. ویسپرید: په لومړی برخه پورې اړه لري او وځانته نه ده، او د دیني نبراوو (دعاوو) ټولګه (مجموعه) ده.

۳. ویندیداد: چې مانا یې د شیتانانو د مخنیوي دیتون (قانون) دی چې د اوداسه خبرې هم لري.

٤. یشت: چې د ستاینې او لمونځ په مانا ده چې سندرې یې د خدای(ج) او پرښتو په باره کښې دي.

۵. کوچینی اوېستا: دوړو وړو نبراوو (دعاوو) او زاریو ټولګه ده چې د ورځې او شپې د بېلو بېلو وختونو څخه رغېږي.

په درناوي

ستاسو پښتون ورور
لطیف جان بابی
فاراکوای، نیویارک، امریکا
۲۰۰۰ کال جنوري

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| نه/ مه/ یا | آ | آ |
| اسماني ټکه/ اسماني بلا/ ټکه/ ناورین | پېتازه | آپت |
| شابوښ/ ښه ویل/ غټاوی | آفرین | آپرین |
| پاك/ شریف/ نجیب | آریا | آریا |
| پښتیانا/ د اریایانو ځای/ لوی اوغانستان | آیریانا | آریانا |
| اس/ خریان/ ووس | اسپا/ اسپه | آس |
| پرېشل/ چالاتول/ لېږل | آستې | آستول |
| برندی/هسك | آسمان | آسمان |
| تراوولس لوړ او تر نونس ښکته شمېر | اشته دسه | اتلس |
| تر اووه لوړ او تر نهه ښکته شمېر | اشته | اته |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| اتیا | اشتایتي | په نهه اویا پسې شمېر |
| اڅرۍ | آئیخریه | چړۍ/ زده کړی/ شاګرد |
| اڅن | اسچرن | یو ځای ګنډل |
| اڅه | اسچه | د ورانه هډوکی |
| اخلم | اخل | راپورته کوم یې/ لاس تې راوړم/ نیسم یې |
| اخلي | اخد | پورته کوي یې/ ترلاسه کوي یې/ نیسي یې |
| اخیست | اخد/ خسته | اخست/ پورته کونګ/ تر ګوتو کونګ/ لاسته راوړنګ |
| اخیسته | اخدته | اخسته/ پورته کونه/ تر ګوتو کونه/ لاس ته راوړنه |
| ارت | هریز | پراخ/ پلن/ ویت / ویړ |
| ارز | ارجو/ اریجو | وړتیا/ وړتوب/ یرز/ (لکه په ارزښت کښې) |
| اژدهار | اژیدهاك | اژدر/ اږدر/ ښامار/ لوی مار |
| اږدن | ارزنه | ایږدن/ ږدن/ کاره/ کاکنج/ ګوښت |
| اسپه | اسپه | اس ماده/ مادیانه |
| استازی | استا/ استه | استاو/ پیام وړونکی/ تپالي/ ځری |
| اسي | یسو | کنګلی/ یخك |
| اغزی | اګز | چښی/ ځوز/ ژری |
| اغوستل | ګود | تن پټول/ کالي پوښل/ نمري په ځان کول |
| انا | هنا | انۍ/ د پلارمور/ د مور مور/ نیا/ هنا |
| انجمن | هنجمن | انډېرۍ/ ټولنه/ هنجمن/ هنجومن/ یو شمېر وګړي |

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| انګرېمن/ بدو/ بدور دی/ شیتان | انګره مینیو | انګریمن |
| اچولی/ اوچولی/ تندی، تنده وچولی | آینیکیه | اننګی |
| پلن خپور/ غوړېدلی ویړ هوار | وئور | اوار |
| اوبده/ اود/ اوی وو‌بده | اوبده | اوبد |
| اودل/ اوول/ جار ایستل/ وو‌بدل | اوبده | اوبدل |
| اودي/ ادیي/ وو‌بدي | وابتي | اوبدي |
| اوبجن/ اوبړن/ نروبی | آفنت | اوبلن |
| اپړ/ بو/ پړ/ پړه | آپ/آپه/ اپه | اوبه |
| اچت/ جګ/ غټ/ هچت/ هوچت/ لوړ | هچت | اوچت |
| جګه اسپه/ غټه اسپه/ لوړه اسپه/ هچته اسپه/ هوچته اسپه | هچت اسپه | اوچته اسپه |
| اوړی/ بیده/ خوب وړی/ خملاستلی/ ویده | هوپته | اوده |
| اهور/ وور/ هور | اور/ اهور | اور |
| اوریځ/ وریځ/ وو‌ره | اوره | اوره |
| وربښت/ ورېدل | وره | اورېدل |
| دوړه/ میده سوې غله/ ووړه | ارت | اوړه |
| اوښتل کېږي/ بدلېږي/ څرخېږي | اوارتـــي/ اور اتتي/ اورتتي | اوړي |
| چغ/ غزېدلی/ وږد/ ووږد | اوخشیتي/ ورز/ هرازد | اوږد |
| تردې ګړیه/ دا مهال/ وس/ همدا شېبه | اسو | اوس |
| اوسپنده/ پولاد/ وسپنه/ هوسپنه | سفنه | اوسپنه |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| اوسم | اسو | استوګن یم/ استېږم/ پایم/ ځای پر ځای یم |
| اوسی | اسو | پاړی/ وسی/ هوسی |
| اوش | ائوشه | بود/ سد/ سول/ هوښ |
| اوښ | اوشترا | اوش/ ووښ/ اوږد غاړی او لنډ لکی ځاروی دی |
| اوښته | اوارته | اوړېده/ بدلېده/ ځرخېده |
| اوښکه | آسرو/ اسرو | اوښه/ اینښکه/ سرامی/ وتوت |
| اوم | امه | خام/ کچه/ نارسېدلی/ ووم |
| اونګه | ماونګهه | اونګی/ ماوګه/ مونګی/ میاشت |
| اوولس | هپته دسه | تر اتلس کښته او تر شپاړس لوړ شمېر یا نمبر |
| اووه | هپته | تر اته کښته او تر شپږ لوړ شمېر یا لمبر |
| اویا | هپتایتي | په نهه شپېته پسې شمېر یا لمبر |
| اوېجه | اوېجه | ټاټوبی/ ځمکه/ مېنه/ ورشو/ هېواد |
| ایره | اتر یه | اورپاته دوړه/ مړه سکاره/ ییره |
| ایریي | ائیریه | په پښتو کښې اوس هم دود دی خیرن لوښي او دېګونه په ایره پرېولي چې په درناوي سره د اور له کبله ایره پاکه او سوتره ګڼل کېږي ددغه ځایه څخه دي‌چې ایره د پاك او سوتره په مانا دی او هغه ځای چې اورپکښې ایره کېږي ایره یې یې بولي |
| ایږ | ارشه/ اریشه | میلو/ یږږ/ یږ/ یو ځېرونکی ځناور دی |

| پښتو | اوېستا | مانا |
| --- | --- | --- |
| ایش | یش | یش/ لکه په یشېدل کښې |
| ایشناو | یېش | ځوښېدل/ خوټېدل/ یشېدل |
| اشیدل | یایش | ځوښېدل/ خوټېده/ ایشېدل |
| اینجلۍ | جنۍ جینۍ | جنۍ/ جینۍ/ نجلۍ |
| اینځه | هنتچي | پرېولونکې/ تورخېله/ مینځه/ وینځه |
| اینته | انتر | اتر/ انتر/ پکښې/ دننه/ ننوتی |
| باختر | واختر | باختریش/ بخدای/ بخدېس/ پښوېس/ واختر |
| بارومه | بارمه | پېتۍ رسونګ/ وړمه |
| باړه | واره | باره/ ډبرین دېوال/ واره/ وهاره |
| بامي | بامي/ بامیه | ځلاند/ ښایسته/ ښکلی/ ګلالی/ ګلمخی |
| بخښي | بخشهی | بخښوي/ بخښښوي/ پلوي/ ښندي/ ورکوي |
| بد | اکه | خواچې/ خی/ دښ/ نابښه/ ناوړه |
| بډ | بسته | بډه/ د پرتاګه بډه |
| بر | برز | اوچت/ برز/ پاس/ پورته/ لوړ |
| بر | اپیري | لکه په (برخېر) کښې |
| برزي سونګه | برزي سونګه | اوچت زاته سونګه/ لوړه اوسېدونکې سونګه/ په اوېستا کښې و هغه اورته وایي چې په اسمان کښې به د اهورا مزدا په وړاندې سوځېدی |
| برړغی | برزه واچیه | لوړ ړغی/ وچ ړغی |
| برنی | برزنت | برزنتی/ پاسنی/ پورتنی/ لوړنی |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| بړستن | اپاستاراني | پړ/تلتك/ تلتيك/ كنځړ/ تيلتك |
| بس | ويسپه | بسته/ پرداغه پاته/ نورنه |
| بغ | بګه | بغه/ بګه/ ډبنګ/ غټ او جګ |
| بل | بيتيا | دانه/ دغه نه هغه/ نور/ ورپسې |
| بلاربه | باربره | اوميندواره/ برالبه/ پوړسېدلې/ تنده/ دوه ځانه |
| بلګ | وريكه | پاڼه/ پاڼې/ پخه |
| بلونكى | زوتر | بانګويى/ بولونكى/ خبراوو/ راغوښتونكى |
| بن | هپانى | د دوو مېرمنو څخه يوه |
| بنډل | بنده | بسته/ بنچه/ غوړشكه |
| بنګه | بنګه | د چرسو بوټى |
| بور | پوخره | پترى/ پوت/ پور/ زوى/ نارينه زوکړى ابور لكه په تربور كښې |
| بوري | بوري | په كندهار كښې د يوه ځاى نوم دى. |
| بويرشته | برشته | جغدى/ جلى بلى/ وريت |
| بوزل | وزيتي | بوتل/ بوتلل/ بيول/ چلول |
| بوزه | بوزه/ بوزيه | اوزه/ بزه/ وزه/ وز |
| بولي | زوانتي | بلي/ ګڼي/ يادوي |
| بومى | بومى | آراوسېدنكى/ ايرميشت/ بوميا/ ځايي |
| بويه | بويه | پكار ده/ښايي/ وي به |
| بيا | ابي | بله پلا/ بل ځل |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| بیاسپړدونکی | ابي سادتر | بله پلا سپړ. ېدونکی/ بېرته سپړېدونکی |
| پاڼه | پرینا | بلګ/ پاڼی/ پخه |
| پچه | پشکه | اسک/ تاس/ خسنی/ یېسک |
| پخه | پخوه | اخلی پخلی/ پوخ |
| پر | اوپري | باندې/ پرې |
| پر | پتي | لکه (پرغره ختل) |
| پرا | پرا | لکه په (پرانیز) کښې |
| پرانت | پراندزته | پرانیت/ پرانیست/ خوشي سو/ وسپړېد |
| پرخه | پرشویه | پرشی/ چنی/ شولنګ/ شونم |
| پرې | افري | پر/ پرباندې/ وړباندې |
| پرېمان | پرو | پروېڼ/ پرېوان/ ډك |
| پرې ویل | افري وچه | ښیراورته کول/ وچې پوچې ورته ویل |
| پړ | پریت/ پریته | پړیت سترګی/ خړسترګی/ رنګړی/ ګرم/ ملامت |
| پس | اپایه | پاته/ پاتې/ پسته/ وروسته |
| پسله | اپې | بیا پسې/ پسته نو/ تردې وروسته/ وروسته نو |
| پسه | پس/پسو/ پوس | پخك/ پخکی/ ګړی/ مړیی/موږی/ پوسه |
| پسېرلی | اپاسره د یاکه | سېرلکی/ سېرلی/ مرغومی |
| پشو | فشو | پیشکه/ پیشو/ پیشي |
| پښتۍ | پرشتي | پوښتۍ/ د سینې نری هډوکی |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| پښه | پشنه | پاپی/ پپی/ ښپه/ ښنه |
| پل | پدا/ پده | خاپ/ د پښې د تلې نښه/ کرښپل/ منډه |
| پلا | پلاد | تپال/ ټک/ چوپه/ څل/ وار |
| پلار | پیتار/ پیتر | بابا/ پاترې/ دادا |
| پلن | پوانه | اورږد او پسورور/ پیړ/ پیت/ څپاړ |
| پله | پمان | چاپړی/ د تلې پټ/ دوریوه خوا/ یو اړخ |
| پلی | پده | پر خپلو پښو رهي/ پر پښو تلونکی/ څړه/ څوړ |
| پمن | پمن | پمنی/ په پم اخته/ خارښتي/ د پم ناروغی نیولی |
| پنځلس | پنچدسه | په څورلس پسې شمېر/ پینځلس |
| پنځم | پوخذه | پینځم/ ترڅلورم لوړ او تر شپږم کښته |
| پنځوس | پنجاسته | په نهه څلوېښت پسې لمبر یا شمېره |
| پنځه | پنچه | پینځه/ په څلورپسې لمبر یا شمېره |
| پند | پنتای | پاټان/ پټڼ/ پن/ رو/ روده/ لاره |
| پو | پای | لکه په (پوول) کښې |
| پوت | پوتراو/ پوتهره | بور/ زوی |
| پوخ | پخوه | پخسوی/ پخه/ رسېدلی |
| پور | پاره | اوګرایي/ پاتې/ باندې/ پېر/ تاوان |
| پورې | پارای/ پاره | لرې (لکه پورې غاړه) |
| پورې | پرې | سره (لکه په تا پورې تړلی یم) |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| پوښتل | پرشات | پښتل/ پوښتنه کول/ تپوس کول/ ګروېږل |
| پوښتېدل | پرشتی | پښتېدل/ پوښتنه ځنې کېدل/ تپوس ځنې کېدل |
| پوول | پاي | پيايل/ پېول/ څرول/ مال د څړ له پاره څړ ځای ته بېول |
| په | اوبه | بر/ در |
| پې | پايتي | په |
| پې | پو/ پنو | ماسته |
| پېرى | پيريکا | اپرا/ اپره/ دېب |
| پېژندل | زنتي | اشنا کېدل/ پېزندل/ پېژنل |
| پيسه | پئيسه | ايکۍ/ پاسو/ خوشمړې/ روپۍ |
| تاسې | يوژم | تاسو/ تئ |
| تاو | تاف | تاپ/ تودوخې/ سوروالی |
| تپت | تپته | اوېږ/ بړاس/ توبش |
| تر | تارا | لکه (ترځايه/ ترکوره) |
| تر/ تا | هده | لکه (ستا تر کوره پورې ځم) |
| ترى | ترشنه | ترې/ تندې اخيستی |
| ترښځ | تخشش | تخځ/ تېشه |
| ترو | ترو | بيا هم/ نو |
| تروری | براتوريه | اګو/ ترور/ د پلار خور |
| تره | تويره | اکا/ د پلارورور/ کاکا/ کاکو |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ترهېدل | تراس | ترېدل/ تور خوړل/ ډارېدل/ يرېدل |
| تريخ | تيخره | پلمو/ ترخه/ زلير/ زوړ/ کيخ |
| تس | تسه | تچ/ تش/ خالي/ ډډ |
| تښت | تخت | لکه په (تښتنه) کښې |
| تښته/ ته | تخته | بدې غړل/ تراټه/ خړه کښته |
| تښتي | تخش | بدې غړل/ تراټې ته تيار/ ترپي/ څغلي/ خړه کاړي |
| تښتېدل | ترشتی | ترپېدل/ ځان کښل/ څغلېدل/ خړه کښل |
| تم | تما | لکه په (تورتم) کښې |
| تنده | کرشت | تازه ټوکېدلی کښت/ کرشين/ نوی راشين سوی کښت |
| تنه | تنه | پړی/ تن/ ځون/ خټ/ کالبوت |
| تو | تو | ځای/ لکه په (جغه تو) کښې |
| توخمه | تئوخمه | اړمن/ تومن/ تومنه/ تېمنه |
| تود | تپت/ تپته | پو/ تاوجن/ تپتی/ سور/ هوړمن |
| تور | تاره | تاری/ تت/ تروړه/ تياره/ رغوست |
| تورکښ | کشترييه | توربـاس/ تـوره کښونکـی/ کښتـری/ کښتوری |
| توړ | توش | لکه په (توړل) کښې |
| توکم | توخمن | اره/ پښت/ ختمه/ زوزات |
| تومنه | تما/ توخمان | تمان/ تمه/ تومنه/ تومه/ تومان/ مايه |
| تويه | تويَه | رود خونه/ د اريا خونه |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ته | توم | اروندي/ تا |
| تې | تې | ته يې |
| تياره | تا هره | اندېر/ تاريکه/ ترغونې/ خړه/ دوند |
| تياره تم | تاهره تما | تکه توره تياره/ توره دربه/ توره دربيله |
| تېره | پايرا | پرېکوونکی/ تېز/ غوڅوونی/ ناپخ |
| تېښته | تارشته | بدې غړنګ/ ترپله/ ځغاسته/ خړه کښنګ |
| ټکره | ستخره | ډغره/ لګېدل/ مخامخ کېدنګ |
| جادو | ياتو | پاړو/ جوګ/ دروهه/ کوډې |
| جوخت | يو خشتی | موښتی/ يو ځای/ يوخښته/ يوخښتی |
| جيږګی | د وژګی | جږګی/ دوژګی/ ژردګی/ سژګی/ چيژګی |
| جينۍ | جينی | اينجلۍ/ جلۍ/ جنۍ/ نجلۍ |
| څپاړه | کاړته | برکښه/ چوړا/ د هره/ کلتۍ |
| چړګ | کهرکتات | بېګر/ توتو/ څرخی/ کړکړې |
| چړی | ائيخريه | اخړی/ چڼې/ زده کړی/ د مزدك چوپړوال |
| چښل | چشتي | چيښل/ سورول/ شومل/ غړپل |
| چکوښ | چکوشه | څبتې/ مترك |
| چې | چې | تې/ څې/ سې |
| چېرته | يذره | پرکمه/کوم پلو |
| چېرې | کوذره | کم ځای ته/ کوم ځای |
| ځغاستل | يوخته | تاختل/ تر پلل/ ځغستل |




| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ځغلم | زګد | تاختم/ تر پلم |
| ځغله | زګده | تاخته/ ترپله/ درګه |
| ځغلي | اسزګستو | تاختي/ ترپلي/ درګي/ منډه وهي |
| ځله | ذرايه | لکه (څو ځله/ درې ځله) |
| ځما | جمی/ هچه | زما/ لما/ له ما |
| ځمکه | زم/ زيم | خاوره/ زمکه/ زمی/ مځکه |
| ځوان | يووان | تورخوږی/ تورشونډی/ ځلمی/ مړانې وهلی |
| ځور | زواری | ازار/ ربړ/ زور/ زوراوی/ کړاك |
| څخه | هچه | څه/ خچه/ خخه/ خدای زده/.هڅه |
| څرمن | چرمن | بوزی/ پوټکی/ پوست/ چمړه |
| څرول | فشاونياهي | پوول/ پيايل/ پېول/ څربول/ مړول |
| څلښت | سنياستي | څلېښ/ سرېښ/ سليخ |
| څلور | چتور | تر درې لوړ او تر پينځو کښته لمبر يا شمېره |
| څلويښت | چتوريست | تر نهه دېرش لوړ لمبر يا شمېره |
| څو | چواز | څومره/ څونې |
| څورب | چرب/ چرپ | څورپ/ غوړ/ لغوړن |
| څورلس | څارو دسه | تر دېرلس لوړ لمبر يا شمېره |
| څوک | څيکه | کم/ کوم/ کس/ چا |
| څه | چيت | لکه (څه کوې) |
| څېر | چيدره | پهېړ/ څاندره/ څېرمه/ ورته |

| پښتو | اوېستا | مانا |
| --- | --- | --- |
| څېره | چیثهره/ چیهتره | بڼه/ جوله/ چته/ سکوی |
| خپل | خواتو/ هوېږ هیدیا | ځانته/ ځاني/ خواته |
| خدای | بګه | بغه/ بګه/ ښبتن/ خدی/ خدیو |
| خر | خره | اوږد غوږی/ اش/ خرې/ خریان/ مردار هډی |
| خښمه | ائسمه | ایشنا/ برغز/ خښم/ خوشکه/ یښم |
| خوابښې | سواشپرا/ سواشرو | خوشوی/ د ښځې مور/ د مېړه مور |
| خوب | خوفنه | اړراو/ بیدېدنه/ پرېوتنه/ څملاستنه |
| خور | خوانهر/ هوګهر | خونده/ خوینده |
| خوري | خورتی | خواږه ژویي او تېروي يې/ نغړي |
| خوړ | خور | خوراك |
| خوږ | خوریزیشته | په زړه پورې/ خوندور/ مزه ناك |
| خوږه | خشده | خواږه/ خوږلني/ شیرینی |
| خوسر | خواسورا/ هوسوره | خسر/ سخر/ د ماینې پلار/ د مېړه پلار |
| خوشه | اوشه | څېکه/موټکه/ وږی |
| خول | خوده | تغ/ د اوسپنې خولی |
| خوله | خویه | پتخول/ تریوست راوتونکې اوبه/ خوېله |
| خوند | خوندوره/سواد | توه/ خکه/ مزه |
| خیره | هیخره | چټلي/ خچنه/ خوری/ منګك |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| خیشت | خشوست | خوشت/ لوند |
| دا | تیه | دغه/ همدا/ همدغه |
| دانه | دانه | لونکی/ لونه/ ننکۍ/ نونکی/ نونه |
| درپی | درفش | بیرغ/ جنډۍ/ څلی/ رپی |
| درست | درواستي/ دروستي | بشپړ/ ټوله/ غونډ |
| درغل | درګوانت | چلی/ درغلندی/ درواغجن/ دروهلی |
| درمند | درو | درمن/ درند/ درو |
| درواغ | درواغه | دروه/ سوړه/ سوڼه/ سوڼې/ نارشتیا وینا |
| درو مم | درومو | ټګ کوم/ ځم/ خوځم/ لاروهم/ یونم |
| دررسېدل | دراومان | خوځېدل/ یونېدل |
| دروېند | درونت | ټګ/ دروهجن/ دروهلی/ دروهونکی |
| درې | درایه | تر دوو لوړ لمبر یا شمېره |
| دریا | زرایه | راده/ زرایو/ سیند |
| درېږه | درېګه | تمېدنګ/ درېدنګ/ درېږ/ درېږی |
| درېغ | دارګه | درنګ/ دم/ لارغه/ لب |
| دښ | دژ/ دش | بد/ دوښ/ لکه په (دښمن) کښې |
| دښت | دش | بېږیاو دښته/ راغ/ راغه/ مېره |
| دغه | هچه | دا/ همدا/ همدغه/ هوی |
| دلته | ایدا | ایدا/ ایلته/ ایلې/ دلې |
| دنګول | ني دنګتر | سمول/ نېغول |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| دننه | انتر | اتر/ ايننه/ پکښې/ ننوتلی |
| دورې | دورې | ليرې/ ورايه/ وريا |
| دوږخ | داوژگهـــه/ دژانگه/ اوژگهه | تاترين/ دوغس/ دوغښ/ ورګړ |
| دوست | زوش | تېرونی/ خپل |
| دوښمن | دش مينـــو/ دوژگه/دوشترا | دښمن/ دښن/ ميرخمن/ ميرخی |
| دوولس | دوه دسه | تريوولس لوړ لمبر يا شمېره |
| دوه | دوه | تر يو لوړ لمبر يا شمېره |
| دوی | دوی/ دويه | د (دا/ دغه/ او ده) ډېر ګړی |
| دويم | دوييه/ دوې | دوهم/ دويم/ دويی |
| د هراوت | هراوتي | دېهراوت/ هراوتی/ هراهوتی |
| دېب | دايوه/ دېو | جيڼ/ خړيس/ رچ |
| دېرش | دريسته | ترنهه ويشت لوړ لمبر يا شمېره |
| ديرلس | درې دسه | تر دوولس لوړ لمبر يا شمېره |
| دين | داينا | کېت/ کيش/ ګروه/ لار |
| ډېوه | د يـــوا/ ديـــوه/ دئېوه | څراغ/ څيراغ/ ډيا/ ډېوا |
| راغه | راگه | ډنډاو/ راغ/ شين ډنډ/ شنيلی |
| راغلی | گاتکه | دلې/ رارسېدلی/ راستون سوی |
| راوست | اواديېته | اورې دی/ دلې دی/ راوړی |
| رژېدل | هيريز | پرېوتل/ تويېدل/ رالوېدل |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| رش | رایشه | څووه/ رمۍ/ زهوب/ نو |
| رشتیا | ارش | رښتیا/ روکه وینا |
| رشتیاتوب | ارشتات | ارتوب/ رښتیاتوب/ روکتوب/ یو مختوب |
| رشه | رشته | اسنا/ ښه کړه |
| رغړي | گرت | اورېږي/ غړي/ گیلیږي |
| روځ | روچه | روځ/ رونا/ ورځ |
| رود | زرایه | د اریا/ زرایو/ سیند |
| روښنا | روخشنا | اغيږ/ رڼا/ رونا |
| روڼ | راوچه | تېغون/ ځلاند/ رغ/ روښان |
| ریچه | ریکشه/ لیکشه | د سپږې هگۍ/ ریچکه/ ریشکه/ وړه سپږه |
| ریشتونی | اریشوا | رښتونی/ رښتیانی |
| زات | زات | پیدا ېښت/ زووال/ زېږی |
| زاته | زاته | زوواله/ زېږې |
| زده | ارزه | ازده/ په سوچ کې/ پیاد/ یاد |
| زده کول | چشتایتي/ چشتي | په سوچ کښې ځایول/ پیادول/ یادول |
| زر | هزانره | سل سلیان |
| زړه | زرده/ زره ده | خوا/ ړه/ من |
| زړه ور | زري ورای | باتور/ بې بیري/ زړن/ مېړنی |
| زغاست | ازگاستي | په منډه/ ځغاست |
| زغلم | زگد | په منډه کېږم/ ځغلم |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| زن | زن | لکه په (تورزن) کښې |
| زنګون | ژنو | ټکی/ ټيټکی/ د پښې هغه برخه چې ورون او پونده سره موښلوي. |
| زنه | زانو | ژبون/ د لاندې شونډې او مرۍ تر منځ هډوکی. |
| زو | زا | لکه په (زوول) کښې |
| زور | اوجــــو/ زور/ سوره | تاو/ خروښ/ سورښت |
| زوړ | زورا | پوخ/ په منګ رسېدلی/ زپ/ کمزوری |
| زوړ | زرد | د ښې وتلی/ سولېدلی/ غورازه/ له کاره وتلی |
| زوم | زاماتر/ زماتره | د نوږ مېړه |
| زوول | زا | پيدا کول/ زوکول/ زېږول |
| زوی | پوثره | بور/ پوت/ پور/ زی |
| زه | ازم | اځم/ اځه/ ازه |
| زېږي | زايتي/ زييتي | پيدا کېږي/ زوکېږي |
| ژاوله | ژاتو | پاپړی/ چيږ/ زاوله/ ژتی/ ژوله |
| ژبه | هرو | اژوه/ جبرک/ جبه/ هربنه |
| ژر | ژره | په بېړه/ په تلوار/ زر/ هله |
| ژمی | زياو/ زيم | جمی/ د يخنې موسم/ زمی |
| ژند | زند | لکه په (پېژند) کښې |
| ژواک | ژوا | ځواک/ جوندون/ ژوندون/ ژوه |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ژور | جفر/ ژفره | جور/ ډوب/ ډیپ/ غري ورې/ ننوتی |
| ژوره | ژرو | اجه/ برټ/ ژرۍ/ ژروی/ شو لکه |
| ژوند | ژن/ ژونت | جوند/ جیو/ زوند/ ژیوه |
| ژوندی | ژیو | د ساه خاوند/ ژوی/ ساکښ |
| ژېړ | زیری/ زیریته | رنځړی/ زېړ/ ژړ |
| ږمنځ | فشنچي | پاروکۍ/ ږمونځ/ کاځی |
| ږیره | ریشه | بمبل/ حوزه/ د زنې شاوخوا وېښته |
| ساړه | سارتا | بې تودوخي/ یخ سوي |
| سپږه | سپیش | بجه/ بوګړۍ/ بیجه/ شپږه |
| سپور | اسپه باره | سورلنی/ سورلونی/ سوور/ کښېنستلی |
| سپۍ | سپن | توتو/ چخا/ چیخا/ کوچ/ لمتېك |
| سپیازه | سپایه | بې وخت د کوچیني غورځونه او زېږونه/ زیان/ سپازه |
| سپیره | سپېره | ایرن/ په خاورو ککړ/ خړ/ دوړن/ سپېرخولی |
| سپې غوندې | سپکه | بې توله/ توزن/ تیټ/ سپك/ سپکی |
| سپین | سپیتا | پاغونده/ سپیت |
| سپینتمان | سپینته مینیو | سپین تما/ سپینتمن/ سپین توخمی/ سپین تومنی |
| ستا | ستا/ هچه | دتا/ یتا/ یتو |
| ستان | ستان | استوګنځۍ/دېس/ ستهان/ هېواد |
| ستایل | ستو | په ښه سترګه کتل/ دروند بلل/ غټ ګڼل |

| مانا | اوېستا | پښتو |
| --- | --- | --- |
| اوچت/ بګ/ غټ/ لوی/ مهی | ستاورا | ستر |
| چکه/ ليدغړی/ لېمه | ستېره | سترګه |
| انه/ بې دمه/ ټپلی/ ستومانه | سترينه | ستړی |
| اندېر/ بلمبغ/ تېری/ زياتی/ ستم | ستمبه | ستم |
| د ګنډلو ستن چې سپڼسی ورلوېږي | ستونه | ستن |
| لکه په (ستنېدل) کښې | ستن | ستن |
| ستربوده/ غټ څاروی/ لويبول | ستور | ستور |
| ستبری/ ګوپ/ ګوپان | ستويسه | ستوری |
| پښې/ ستن/ سته/ سکام/ مته | ستونه | ستون |
| پيدا/ چيدی/ دی | استه/ هه سه | سته |
| ککری/ کوټې | سر/ سره | سر |
| تر څنګه/ ټل/ مل/ هم ښنګی/ يو ځای | سره | سره |
| بې تودوخې/ سوړ/ يخی سوې | سريته | سړه |
| اوسنی/ دا/ دغه اسځ/ همدا | سخشه | سږ |
| پپوس/ پړپوس/ سخي/ شژی | سوش | سږی |
| پرېکول/ سکښتل/ سکندل/ سکنودل | سچنده/ سکندو | سکڼل |
| سوخته/ مړې سوې سکروټه/ منډلی | سکرنه | سکور |
| ربښتينی/ سکنی/ د يوه مور او پلار زوکړی | هخه | سکه |
| په نهه نوي پسې شمېر يا لمبر/ لس لسيان | ساتا/ سته | سل |
| اوراچول/ ايره کول/ دودول. لوګی تري ايستل | سوچه | سوځول |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| سوځي | سوچيتي | ايره کېږي/ بلېږي/ دود ېږي/ لګېږي |
| سوخت | سوخته | سوځېنت/ سوځنګ/ سوی |
| سور | سخرا/ سوخرا | انار غونډې/ رتې/ شونډه کی رنګ/ ګورجه |
| سوره | سوره/ زور | تاوتاوی/ زور/ سورتوب |
| سوری | سوری | پنځر/ تپوبکی/ سری/ وت/ وتکی |
| سوړ | سريته | بې تودوخې/ کنګلی |
| سوټک | سونګه | دودول/ سوځل/ سونګه/ سيځل/ لوګی ـ ترې ايستل |
| سوڼ | سوشنه | پزه سوغل/ سڼ |
| سوه | سفه | پاکوښه/ څوه/ سم/ سوم |
| سېږي | سوچيه | سوځېږي/ دود ېږي/ لوګی کېږي |
| سيند | هيند | سين/ سيندهو/ هغه رودي اوبه چې د مځکې پر مخ بهېږي. |
| شئين | سئينه | شندی/ شينا/ شيين/ يولوړ الوتونکی ښکاري مرغه دی. |
| شا | پرشتي | استربل/ څټ/ ملا/ وروسته خوا |
| شپاړس | شوش دسه | تر پينځلس لوړ لمبر يا شمېره |
| شپږ | شوش | تر پينځه لوړ لمبر يا شمېره |
| شپون | شپويتي | بانډيسي/ پاسوان / شپنکی/ ګډبه/ لېربه |
| شپه | خسپ/ خشپه | تر ماښام وروسته تياره وخت چې د خوب له پاره وي. |
| شپېته | شويشتي | تر نهه پنځوس لوړ لمبر يا شمېره |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| شپیشته | اسپیشته | یو ډول وابنه دي چې څاروي یې خوري. |
| شته | هیشته | چیدی/ دی/ سته |
| شکوڼ | سکورینه | سکوڼ/ سوکل/ شکاڼ |
| شګه | سیکه | ریچ/ رېګ/ سال/ سول/ ګټکی |
| شل | ویسسیتي | تر نونس لوړ لمبر یا شمېره |
| شم | شم | لکه په (شمرم) کې/ د شپې یوه برخه |
| شمېر | مرانه | کړندر/ ګړندر/ ګڼه |
| شنل | خشنا | اوشنل/ تیتول/ خورول/ نوستل |
| شو | سو | سو |
| شوده | خشوییته | شیده |
| شول | شیو | سول |
| شوه | شوته | سوه |
| شین | اخشینه/ خشینه | اسماني/ اوشبتي/ نیلګون/ نیلي |
| ښاد | شاتی | انندی/ خوشال/ خوښ/ ښېراز |
| ښاده | شاته | انندۍ/ خوشاله/ ښېرازه |
| ښار | خشاذره/ خشتر/ خشتو | کندی/ ګرام/ لویه کلا/ نغر |
| ښایسته | خشائته/ خشئیته | خایسته/ پیمخی/ زړه وړونکی/ ښکلی/ ګلمخی. |
| ښایسته یما | خشئیته ییما | خایسته یمٙا/ پیمخی یما/ زړه وړونکی یما/ ښکلی یما/ ښېسته یما |
| ښځه | ستریچی | ارتینه/ چانۍ/ سړۍ/ مېرمن |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ښکلی | سریرا/ سریرو | ډولي/ سریری/ ښه ایسېدونکی/ ګلالی |
| ښکنځل | دوش سراوه | پوچ ویل/ سپك ویل/ ناوړه وینا |
| ښو | شیو | لکه په (ښوول) کښې |
| ښوول | سراویه | جوتول/ څرګندول/ ښکاره کول |
| ښوونه | ښیو ځنه | جوتونه/ څرګندونه/ ښودنه |
| ښه | هه | بې/ په زړه پورې/ خه/ غوره/ هو |
| ښه اسپه | خواسپه | په زړه پورې اسپه/ ښه اسپه |
| ښه رشه | هورشته | خه رشه/ غوره چلند/ واوارشه/ هوکړه |
| ښی | د شینه | راسته |
| غاړه | ګراه | غړانګه/ غړی/ مغزی/ ورمېږ/ د سراو تنې تر منځ برخه |
| غالی | ګاتو | انکړ/ ځای/ سرای/ غولی |
| غانده | ګاندیته | تراټه راټه غندئ/ ملامتوئ |
| غدی | ګدی | داړه ډاکه/ لاره نیونګ/ لاره وهل |
| غر | کومنه/ ګیري | روه/ غور/ کوپه/ ګرت |
| غربي | ګرب | څګل/ سیاګك/ غرېك |
| غرمه | ګرمه/ ګریمه | بربخر/ د ورځې نیمایي/ لمرتاو |
| غړي | ګرت | څرخېړي/ رغړي/ کړېږي/ ګیلبړي |
| غښتلي | خشتاو | اوږور/ رټ/ زبرلاسی/ زورور/ هیني |
| غشي | شو/ یشو | اغر/ شاړه/ شتی/ شیتی/ یشی |
| غل | ګده | شکوونکی/غدوی/غدی/غلاکوونی لځوونی |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| غلا | ګدیه | پټول/ توغول/ شوکه/ لارنیول/ لاروهل |
| غلی | ګتکه | لکه په (راغلي) کښې |
| غندلی | ګاندیتکه | بدګڼلی/ تر ټلی/ رټلی/ غاندلی |
| غنم | ګنتومه | غله |
| غوا | ګو | او/ پرمېښی |
| غوبه | ګوپانه | غواهو/ غوبنی/ ګوروان |
| غورنیکه | ګورنیکه | د پلارنیکه/ د نیکه پلار/ غرنیکه/ نیکه بابا |
| غوړ | اوش/ ګاوشه | غوشه |
| غوښه | ګوشه | ایشی/ بشي/ ببتیې/ خځکی/ سربه |
| غونه | ګونه/ ګوپنه | خیل/ ډول/ ګونه |
| غویی | ګویه | ډنګر/ غځکی/ غوایی/ غوځکی |
| غه | ګت/ ګېت | لکه په (دغه/ هاغه او هغه) کښې |
| غېلی | ګیه | رمه/ غېله/ غیېله/ ګله/ ګوار/ لېري |
| کار | کاریا | پازه/ چار/ کړه |
| کاره | کاریته | کرکېلوي/ کري/ کښتوي |
| کاږي | کارشتي | باسي/ بهروی/ د باندې کوي يې/ کښې يې |
| کال | سرده | درې سوو پینځه شپېته ورځې/ دوولس میاشتې |
| کان | کان | درنګ/ کاړ/ کاڼ |
| کاندي | کړنه وتي | پر ځایوي/ کړي/ کوي/ کي |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| کانیز | کارنا/ کرنه | تیږن/ ډبرین/ کاڼین/ کنګړ |
| کاوه | کاوه | پاك چاري/ پاك کهولي/ هوښياري |
| کب | کپل | ماهي/ مایی/ مشی/ مهی |
| کتل | کاس | ستر ګي رغړول/ کاسل/ کسل/ وینل |
| کر | کرش | کرښت/ کرنه/ کرهڼه/ کښت |
| کرښ | کرش | کاږل/ کرښل/ کښل/ لیکل |
| کرښه | کرشت | پاڼۍ/ پټاره/ رښکه/ کیله/ لیکه |
| کرک | کهرك | باټېرى/ بټېر/ مړز/ ورزړ |
| کرل | کرش | کرښتول/ کرکول/ کرهڼه کول/ کښت کول |
| کروند ګر | کرشیوت | کرښتګر/ کرکوونکی/ کرونکی/ کښتګر |
| کرهڼه | کرشي | کرښه ایستنه/ کرلیکه/ کرڼه/ کرونده |
| کړ | کر | کا/ که/ کي |
| کړل | کریتا | پرځایول/ کاول/ کول |
| کړي | کرتي | پرځایوي/ کاوي/ کوي/ کاندې |
| کسر | کاسو/ کسو | په منګک تر نورو لږ/ کچ/ کشر |
| کسل | اکسل/ کاس | ستر ګي اړول/ کاسل: کتل) / ګورل/ وینل |
| کښت | کرشته | رښکه/ کښ/ کرښکه |
| کښته | شکیپه | ښکته/ شېوه/ ښکېته/ کښته/ لاندې |
| کښل | کارش/ کرش | ایستل: باسل / بهرول / کاږل |
| کښې | کشم/ کشېم | لکه په (کښېناستل)کښې |

| پښتو | اوېستا | مانا |
| --- | --- | --- |
| کښي | کشي | کي/ کښې |
| کله | کده | ککره/ ککرۍ/ کوټې |
| کله | کره | څه وخت/ کوم مهال/ کوم وخت |
| کم | کم | څوك/ څه/ کوم |
| کمکی | کمنا | کوچینی/ موناني/ نانی/ وړوکی |
| کند | کاند | کاند/ لامبات |
| کنده | کنته | جوېړ/ چوغالی/ کایی/ کویی |
| کنل | کنه | ژورول/ غوچول/ کنول/ کینل |
| کنه | کرنه | په غوږو درنه/ په غوږو کمزورې |
| کوپ | کوفه | راوتلې اوږه/ کو/ کوب/ وتلی ځای |
| کوتل | کرش | ځېل/ ځیځېرل/ ټوټه کول/ کواټل |
| کوټه | کته | څپر/ خونه/ د ناستې ځای/ سرپناه |
| کول | کرنو | پر ځایول/ کاندل/ کړل |
| کومی | کم/ کام | ستونی/ غړنګ/ مرۍ |
| کوڼ | کرین | په غوږو درونډ/ په غوږو کمزوری |
| که | کت/ که | اګر/ په دې/ کنه/ مګر/ نو |
| که ماکړای | کت کرت ماکیت | که ما کولای |
| کیشپ | کسیپه | شکرتتۍ/ کاسه ګرب/ کسیپۍ/ کسپ |
| ګام | ګامه | پل/ پی/ ډانګی |
| ګرګی | ګرینه | د اینې په ناروغۍ اخته/ کوربخی/ ګرګین |

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| جاغې / ګرېوه | ګريوه | ګروه |
| جنډۍ/ جونډۍ/ کوکنه/ کوکۍ/ ويل | ويل | ګل |
| انګوشته/ ټپ | انګوشته | ګوته |
| ځيل/ ډول/ رنګ/ غونه/ ګونه | ګونه | ګونه |
| مړه خېټه/ نس | ګېڅه | ګېډه |
| په لاس کښېږ/ په موټ کښېږ/ رابند/ رامنځ ته سوی | ګريو | ګير |
| پاټان/ پند/ تلنځۍ/ روده/ ليار/ لير | رايديا/ رېيه | لار |
| اته/ چاچۍ/ چکو | زاس | لاس |
| لاستی/ موټی | زاسته | لاسته |
| لپاره/ لره | ردې | لدې |
| اړخی/ ټيټ/ کوز/ ورای | ادارا | لر |
| په لاس کښېږ /درلودل/ درلوول/ لرنګ | درتانو | لرل |
| ته/ لکه په (تالره درځم) کښېږ | رله | لره |
| تر نهه لوړ لمبر يا شمېره | دسه | لس |
| سل زره | لك | لک |
| سپينه/ شلم/ کلکه وازګه | دومه | لم |
| غورمه/ لمېر/ مر/ مير/ نور/ ميترا | اهور/ هور | لمر |
| درناوی/ ستاينه/ مونځ/ نمونځ | مزده | لمونځ |
| بچۍ/ د مور او پلار ښځينه زوکړې | دوګدر | لور |
| لوغل/ لوول/ ولشل | کشي | لوشل |

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| دود/ لو/ لوه | دوتې | لوګې |
| لوستي/ وايي/ وللي/ يلي | نيباد | لولي |
| پخ/ جال/ دام/ دومن/ دومی/ ډبی | دمن | لومه |
| سروسی/ غټ مير/ لوی مشر/ لوی مير | مسی شته | لوی مسر |
| څخه/ څه/ لکه (له تا مې وغوښت) | ادت | له |
| توند/ چټك/ ګړندی | لهر/ ائوروت | لهر |
| تونده اسپه/ چټکه اسپه/ ګړندۍ اسپه | لهر اسپه | لهر اسپه |
| کاسلی/ کسلی/ ګورلی/ وينلی | دا درسه | ليدلی |
| ايسي/ پارا/ پورې/ دورې/ هيسته | دويرې | ليرې |
| د بل/ ديپل/ ډبل/ ډيبل/ کربنل/ کښنل | ديپي | ليکل |
| چګه/ ليد غړی | دبمن | لېمه |
| د مېږه ورور | دبور | لېور |
| بکاړ/ بګياړ/ ډېبتر/ شرموښ | دبوه | لېوه |
| لکه (ما خپل چار تر سره کړ) | منا | ما |
| ماسخوتن/ د نيمې شپې يوه برخه | خشافنه | ماخوستن |
| کوسره/ ماغزه/ مغز | مزګهه | مازغه |
| ترنګوسه/ غوماشه/ مياشی | ماسيکه | ماشی |
| بېګاه/ ترمل/ تورمهال/ تياره وخت | خشاف نيه | مابنام |
| خيپياکه | نمالګه/ نمدکه | مالکه |
| باړی/ بانده | ميته/ ميتنه | ماته |

| پښتو | اوېستا | مانا |
| --- | --- | --- |
| مانده | منته | اومنت/ اومند/ بغرګه/ ډولنګه/ لويه شپله/ منت |
| مچ | مخش | لونسی |
| مځکه | زم/ زيم | او لکه/ ځمکه/ خاوره/ زمکه/ زمی/ زيمی |
| مخ | موخه | بوتی/ پوتی |
| مرغه | مرغه | بروه/ بېروه/ کېبلی/ وابنه |
| مرغه | مرغه/ ميريغه | الوتنی/ چوچو/ مارغه/ مرغی |
| مړګ | مهرګ | بګړی/ مر/ مړتوب/ مړينه |
| مري | مريتي | مړکيږي |
| مړ | مريته | ارواختلی/ بې سا/ سړه خوله/ مړی |
| مړز | خورتيکه | کرك/ نمړز |
| مړښت | مر شويه | نس ډکېدنه |
| مړل | مرتا | ساختل/ مړ کېدل |
| مړنی | مريتان | توريالی/ زړه ور/ مېړنی/ مېړه/ ننګيالی |
| مړی | خوريته | ډوډی/ نمړی/ نوړی |
| مزدک | مزدك | جومات/ ماجت/ ماجيت/ مزګت/ نمزدك |
| مزی | مز/ مسيشتا | پر له وهلی/ تکړه/ زنی/ غښتلی/ مړوچ/ هڅور |
| مږ | ميشه | انډه/ ميندء |
| مسر | مسيا/ ميشته | سالار/ سـ ـنه/ مشر/ مهسر/ مير |
| ملا | ميديا/ ميديه | بور/ شدری/ کمر/ مليا/ مليه |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ملګری | هچامنه | انډیوال/ هخه من/ مل |
| من | منه | تول کانې/دړی/ منیا |
| منډ | منت | لکه په (منډل) کښې |
| منا | نمنا | ځار ځای/ ځپره/ ځپری/ سودله |
| منل | ماین ایتی | خوښول/ رښتیا بلل/ غاړه ایښوول/ هوکول |
| مننه | منه | په ژبه او خوله خوښي ځرګندول/ خوښنه/ منښت |
| منی | همینه | پاڼریژ/ خمسور/ د کال دریم موسم/ وهیل |
| مور | مور/ ماتر | ابۍ/ ادې/ ببو |
| موږ | اهماشو | لکه (موږ سبا وپښتونخوا ته ځو) |
| موږک | موشیکه | بلانګوړی/ مږك |
| مه | مه | نا/ نه/ نې/ یا |
| میاشت | ماستي | اوږمکۍ/ اوږمۍ/ اوګمۍ |
| میر | میتهره | لمر/ مر/ میترا/ نور |
| مېرمن | مینه | مایند/ مېړوښه/ مېړه لرونکې ښځه/ مینه |
| میره | مادریا | مېرنۍ/ نوموړې مور |
| مېړه | مارتییه | د کوچنیانو پلار/ ښځه والا/ کوروالا/ واده سوی |
| مېړه | ماشیه | دوره بول/ سړی/ ماټو/ مرخ/ وګړی |
| میژي | میژیتي | بولې کول/ متیازې کول |
| مېږه | ماشیه | مښه |

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| مېنه | مئشه/ مېش | مېږد |
| مېږدې | مئوایرې | مېږې |
| استوګن/ تېکاون/ دېره سوې | میئشت | مېشت |
| بلنه/ بلون/ راغوښتنه/ مېلمه کول | مېئمسته | مېلمستیا |
| بللې/ بونلې/ راغوښتل سوې/ یاد کړل سوې | مئیهمن | مېلمه |
| ابیانې/ ادیګانې/ مندې | مانتیا | میندې |
| استوګنځی/ ټاټوبی/ تېکانه/ مېشتون | مېخنه/ نمېنیه | مېنه |
| زړه ترنګ/ دوستي/ رت/ ګرانښت | مئیتې | مینه |
| د واده پېغلې/ زړونګه/ نوې او تازه واده سوې | نافیه | ناوې |
| ناښځه | نر/ نریه | نر |
| پخوا کښې/ تر ځنګه/ جوخت/ څرمه/ خواپخوا | نژدې | نژدې |
| د زوی مېرمن/ مړور | سنوشه | نږور |
| خړی/ ګېډه/ مړښتکه | مرشوي | نس |
| پڼې/ پوستك/ لیکی/ ټاپې یا لیکلې جونګ | نسك | نسک |
| د زوی لور/ د لور لور/ لمسۍ/ نپه/ نمۍ | نپته | نمسۍ |
| درناوی/ لماغ/ مز/ مونځ | نماچ | نمونځ |
| همدا ورځ | نو/ نورم/ نېن | نن |
| نس غوټه/ نوم/ نوه | نافیه | نو |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| نور | هور | لمر/ نمر/ هور |
| نولس | نودسه | نونس/ تراتلس لوړ لمبر یا شمېره |
| نوم | نمان/ نمه | د سړي او شي ځانته توری |
| نوی | نوا/ نویتي | تازه/ تند/ سانخچه/ نوزی |
| نه | نو/ نوه | نهه/ تر اته لوړ لمبر یا شمېره |
| نه | نویت/ نه | نا/ نتهه/ نې/ یا |
| نیس | نس/ نیس | لکه په (نیسم) کښې |
| نې | نویت | نا/ نه/ یا/ نه یې |
| نیکه | نیاکه | د پلار پلار/ د مور پلار |
| نیول | ګریو | اخاښل/ تینګول/ دِ ځان کول/ ګیرول |
| نیوي | نوایتي | نوي/ تر نهه اتیا لوړ لمبر یا شمېر |
| و | بوته | ؤ/ وو |
| و | و | لکه په (وګروهېد) کښې |
| واته | وازتی | ایسته کېدل/ ختنګ/ د باندې تګ |
| واده | واذو | د زوم او نـاوې د واده کړانـدې/ کـور جوړونګ |
| وابښ | باستره | بدریشه/ بیاسته/ رسۍ/ وابښی/ ویاسته |
| وابښه | وره شه | شنه/ ورشکی/ ورشه/ وشکی |
| واله | وایدی | ببله/ لشتبی/ ویاله/ وېله |
| وان | وان | خونـدي کوونکـی/ سـاتونکی/ لکـه (ګا ډیوان) |

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| څپرکی څپرکی سپین اوربنت | بافره | واوره |
| لکه په (وتنګ او وزي) کښې | وز | وت |
| بهرېده/ خته/ وته/ وزه | وازته/ وزته | وته |
| بې اوبو/ بېټ/ څوړ/ سپرخی | هوچ/ هوشکه | وچ |
| پاسه/ دړه/ دروازه | دوار/ دواری | ور |
| لکه (دوی ته به یې ورکړم) | اورا | ور |
| د ورور زوی/ وروړزی | براترویه | وراره |
| روڅ/ روځه/ روڼا | راوچه/ روچه | ورځ |
| وروځې/ د سترګو د پاسه میاشت ډوله وربښته | بروت | ورځې |
| پرېکوي یې | فرژن | ورژني |
| اورشو/ څړځای/ راغ/ ورشو/ ورشه | وره سۀ | ورشه |
| اورشه/ راغه/ ورته | ورته | ورشه |
| باکو/ دادی/ رور/ لالا | براتر | ورور |
| پاته/ پیاګی/ ترځټ/ ترشا/ هیسته | اپاره | وروسته |
| ادونمم/ پټون/ رون/ د زنګانه څخه پورته غوښنه برخه | رانه | ورون |
| اورېدل/ ورېدل | وره | وره |
| الوی/ تغولی/ کباب/ ورګی | ورګه | وریت |
| ممی/ وریژه | وروینجه | وریجه |
| ممی/ ممیانې/ ورېژې | وروینجې | وریجې |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| ورېدل | واره | اوربښت کېدل |
| ورېښته | ورتا/ ورسته | خلې/ غونې/ وال/ وېښته |
| وړ | ور | پر ځای/ پکار/ جوګه/ غوره |
| وړ | بریته | برل/ بریاکول/ بودول/ ګټنګ |
| وړمه | براته | بودومه/ ګټمه/ لاس ته کومه |
| وړو | بارمه | بارومه/ ګټو/ لاس ته کوو |
| وړوکی | اپېرې تایو که | پاپرکی/ ژنې/ کوچینی |
| وړومبی | فراتیمه | پرونی/ لومړنی/ مخکینی |
| وړونکی | برتوم | برېدونکی/ بودوونکی/ ګټونکی/ لاس ته کوونکی |
| وړی | وارنا | پت/ پشم/ پېګنی/ ورګ |
| وړي | باریتي/ بریتي | ترلاسه کوي/ ګټي |
| وز | وز | لکه په (الوزل) کښې |
| وز | وز | لکه په(وزي او ننوزي) کښې |
| وزر | بزور | اوزی/ ځنګ/ کونځر |
| وزي | وزیتي | خیژي/ د باندې ځي |
| وزیر | ویچیرا | وجویر/ وجیر/ هجویر/ هجیر |
| وژ | ژن | لکه په (وژل) کښې |
| وژنم | اوجنمي/جنمی | ژوبلم یې/ غخوم یې/ وجنم |
| وژني | ژه | ارواترې کاږي/ ژوبلوي یې/ سا اخلي |
| وږمه | وخشمه | الوېښ/ ایشمه/ نرم باد/ نری وو/ ومم |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| وړی | اوشه | خوشه/ واښکی/ وشکالی/ وښکولی |
| ولاړ | اوه دارته | تلی/ تللی/ تېر/ لاړ |
| وله | وله. | ډزوه/ سوړوه/ وېشتل |
| وله | وایتي | برغنه/ پډه/ جړانګو/ خړانګو/ نوروزۍ |
| ولي | ویده | ډزوي/ واری کوي/ وېشت کوي |
| ولېشت | ویستي | لوېشت |
| وند | بند | بند/ بندۍ/ تړ/ د اوبو تړ/ ورخ |
| وندنی | بنده | بنچه/ غوړشکه/ ګېډۍ/ ونده |
| ونه | ون/ ونه | درخته |
| وو | واته | اوا/ باد/ ماروت/ ود/ وربښ |
| ووړ | خوریته | چونی/ کچه/ کچی/ کوچینوټی |
| ووړ | بریته | بود کړی/ تر لاسه کړی/ ګټلی/ وړی |
| ووړی | وهار | اوړی/ دوبی/ د کال دوهم موسم |
| ووګ | وانګ | خربانګ/ د خره وونګ/ رایی/ نړا |
| وه | وه | په زړه پورې/ وا وا/ وهو |
| وهل | اوجن/ وېجن | پړسول/ ټپول/ ټکول/ درزول/ ډبول |
| ویس | ویس | ساتونکی/ مشر/ لکه په (میرویس) کښې |
| ویسي | وزیتي | وړي یې/ یوسي |
| ویل | وك | خبرې کول/ ږغېدل/ وایل |
| وینځل | ویچ | اوبه پرتېرول/ پرېولل/ مینځل/ ولل |

| پښتو | اوېستا | مانا |
|---|---|---|
| وينل | واين/ وين | ليدل |
| وينه | وهونه | سروبه/ يينه |
| ويني | وهوني | سروبي/ ييني |
| ويني | وينيتي | ليدل کېږي/ ورته ګوري |
| ويشت | وهيشت | وهيشت/ لکه په (يوويشت) کښې |
| ها | ها | آ/ آغه/ هاغه/ هايه |
| هڅه | هچتي | تلاښ/ زيار/کوښښ/ لټه/ هلې ځلې |
| هډ | هچه/ هده | اډ/ اډوکی/ هډه |
| هډو | هديم | بنسټيز/ تاداوی/ سټيز/ سر/ مونډيز/ د وګړو سټه او بنسټ هم سردی. |
| هر | هوررووا | ټول/ لکه په (هر يو/ هرکس) کښې |
| هسک | اسکت/ اسکه | اوچت/ بر/ جګ/ دنګ/ لوړ |
| هغه | هګت | هماغه/ هوغه/ همهغه |
| هلته | اوده | اورېته/ اولته/ هاخواته |
| هله | ادا | اله/ هغه وخت |
| هم | هم | لکه په (همزولي) کښې |
| همهلته | هذره | هورېته/ هوغلته/ هولته |
| هو | هو | ښه/ واوا/ وه |
| هورې | اوذره | اورې/ اورېته |
| هوښ | ائوشه | اوش/ پام/ سد |

| مانا | اوېستا | پښتو |
|---|---|---|
| اومان/ اومه/ ومه/ هومه | هاوما/هشئومه/ هما | هوما |
| هوما ډوله/ هومازنګی/ هوماګون | هوماګونه | هوماغوندې |
| اوی/ ویه/ هایه/ هګۍ | هوه/ هویه | هویه |
| آرزو/ امته/ اومېند | جادیه/ زوش | هیله |
| پارسین/ هیندوکس | اپارسین | هیندوکښ |
| استوګنځی/ ټاټوبی/ هواد | دا هیو/ هد/ هدمن | هېواد |
| لکه په (یستل) کښې | یس | یس |
| ایش/ جوش/ خوټې | یش | یشنا |
| هله | یده | یله |
| لکه په (زه یم) کښې | اهمی | یم |
| ایی/ ځانته/ ځانګړی | ایو | یو |
| ایواځې/ بې مله/ ځانته/ یکړ | ایوا | یواځې |
| د مېږه خور | یور | یور |
| یازات/ یو پیدایښت/ یوازنی زووال/ یوازنی زېږی | یزات | یوزات |
| تګ/ خوځښت | یانه | یون |
| تر لس لوړ لمبر یا شمېره | ایوه دسه | یوولس |
| بې جوړې/ ځانګړی/ ځانله/ یواځینی | ایوه | یوه |
| لکه په (زمایې لاس ستایې ګرېوان) کښې | یه | یې |

# وییپانګه

| ویی | مانا |
|---|---|
| آر | اصل |
| ایروېجه | مرکز |
| بایده | رواج |
| پښتیانا | لویه پښتونخوا |
| پک | وخت/ عصر |
| پوستک | کتاب |
| ټولګه | مجموعه |
| د اریا | رود/ سیند |
| دود | رواج |

| مانا | ويې |
|---|---|
| قانون | ديتون |
| سوچه/ ناوادہ | ستهی |
| جنوبي | سوهيلي |
| مراسم | کړانده |
| تاريخ | کړکيښ |
| اصول | کړنلار |
| شمالي | ګځيځ |
| عقيده | ګروهه |
| کوچ | لېږد |
| کتاب | ليکی |
| مرکز | منځوېجه |
| جونګ/ مجموعه/ کتاب | نسک |
| دعا | نېرا |
| تمدن | وادون |
| سياست | واک |
| اداري نظام | واکچاری |
| لوی/ غټ | وس |
| قاموس | ويي ښود |
| ثقافت | هځوب |


PROPERTY OF ACKU 8961


PROPERTY OF ARIC Established 1989

ARIC
B
3.511
BAB
8961





لطيف جان بابى

**د افغانستان د کلتوري خدمتونو اداره يې وړاندې کوي**

د اړيکو پتې:

**Habibullah Rafi**
**Flat # 226, Gulhaji Plaza,**
**Arbab Road, Peshawar, Pakistan**

**G.P.O. Box # 630, Peshawar, Pak.**
**Tel: (091) 841749**

**M. Asef Wardak**
**Bendhutter Str 3**
**41066 Monchengladbach-**
**Neuwerk**
**Germany**
**Tel: 021 61/ 650 650**

**Latif Jan Babi**
**331 Beach 31 St.**
**For Rochaway Apt. # (2B),**
**NY 11691**
**U. S. A**